گڼه ۱۱
کال ۱۳۴۷

2/69

۱۳۴۷
دلو (۱۱)



ددې ګڼې مضامین





دپخوانی کندهار (یعنی پخوانی زاړه ښار) دنارنج دقصر، چهل زینی او لخشك دغره دېوې برخې ښکلې تابلو چې د کندهار د ارغوانی تمدن ستر مظهر دی. دلته دمنظری په ختیځه خواکې دپخوانی زاړه ښار شرقی لویه دروازه هم لیدل کیږی

کندهار

د ۱۳٤۷ لمریز کال د سلواغې میاشت

# د ډبرې صنعت

د ډبرې صنعت د تاریخ په اوږدو کې ډېر زوړ تاریخ لري او د هغه څخه د شیانو جوړول د انسانانو لومړنی ابتکار دی د ځینو لرغونو آثارو او تاریخي لیکنو له مخې معلومېږي چې دی

صنعت د انسانانو د ژوندانه په لومړنیو مرحلو کې مهم رول درلود څو وروسته له ډېرې مودې کرار، کرار متمدینو هیوادو د عقلي او فکري قواؤ په برکت ددې لرغوني صنعت د انکشاف او تکامل په لاره او همدا

راز د تولید د پراخولو په ملحوظ ئې د ماشین آلاتو په وسیله په زړه پورې تغیرات او پر مختګونه راوستل او بشر ته د عصر د ایجاباتو سره سم د اقتدرت میسر شو چې خپل ټول کارونه په تخنیکي سیستم سره ترسره کړي تولدې کبله وینو چې ننورځ په متمدینو هیوادو کې نه یوازې په مختلفو رنګونو د ډبرو څخه ډول، ډول شیان جوړېږي بلکه د معمارانو د ذوق له مخې د تعمیراتو لپاره په فني ډول ښکلي، ښکلي پارچې جوړوي څو له دغې لارې د خپل اقتصادي بنیاد مزی ټینګ کړي.

څنګه چې جغرافیائي محیط د هرې ټولنې پر توسعه او تکامل باندې ستره اغېزه لري نو دا هم باید وویل شي چې د هر هیواد صنعت هغه وخت ترقي کوي چې د مساعدو شرایطو او پیداوارو له مخې ئې تولیدي فعالیت د تولیدي آلاتو او وسایلو په مرسته خپل تکاملي سیر ترسره کړي او د تولیداتو ګراف لوړ بوزي نو طبعاً د عرضې او تقاله مخې خارجي اسعار لاس ته راوستلای شي.

څرنګه چې زموږ ګران هیواد افغانستان مخ پر انکشاف روان دی، د معادنو په لحاظ هم تر یوحده غني او د هیواد په اکثرو مناطقو کې ډول، ډول کانونه موجود دي چې په کندهار

کې هم د قیمتي ډبرو څو ډوله کانونه سته، لکه امیتس (لعل پیازی) توره ډیکه د خاکریز مصوري ډبري او د شاه مقصود ډبري کان چې د اخلور واړه نه یوازې په داخل کې د هیواد ډېر ارزښت لري بلکه په خارج کې هم ددې ډبرو علاقمندان ډېر دي چې د کمیت او کیفیت په لحاظ ئې اوس ددې ډبرو کار- ګران مخ پر زیاتیدو دي، د یادونې وړ خبره دا ده چې په کندهار کې د اوسنی شرایطو له مخې د اصنعت د تولیدي معیار د اوچتولو په لحاظ چنداني د پام وړ نه دی دا ځکه چې د کارګری طبقې اقتصادي بنیه ئې کمزوره د استخراج او استحصال قدرت ئې په انفرادي توګه نه لري نو د تاریخ نه د پخوانیو صنعت ګرانو په څېر بېله تخنیکي آلاتو او اسبابو څخه ډول ډول شیان د وګړو د استفادې په غرض جوړوي او تر اوسه پورې د لاسي صنایعو په ردیف کې راځي که ددې صنعت ته په تخنیکي شکل وسعت ورکړه شي د یوې خوا به زموږ پوښمېر خلکو ته د کار زمینه مساعده شي او د بلې خوا به له دغه مدرکه نه خارجي اسعار لاس ته راشي.

نو ځکه د کانو او صنایعو د وزارت خاصه توجه پدې برخه کې را- ګرځول غواړو او هیله لرو چې د مربوط مقاماتو او زموږ د شتمنو کسانو په ګډه مرسته د دغه صنعت تقویه شي.



# د آریانا د واکدارانو پخوانی سلسله

مقدونی سکندر په ډېره بېړه دهرات وحدودوته ځان ورساوه، ساتی برزانت لومړی وهرات ته دسکندر د ننوتلو مخه ونه نیوله هر کله چی مقدونی دباختر پرخوارهی شو، نودغه نومړی دده ترشالار بنده کړه سکندر بیرته دې ته اړ شو چی هرات ته راسی نوترڅه کشمکش وروسته ساتی برزانت د کندهار پر خوا راوتښتېدی نوهغه مهال چی وکندهار ته نژدی سکندر په رامرود کی اوسېدی نوبیرته ساتی برزانت بله پلا پر هرات یرغل وروړ اوهرات ئې بیرته لاسته راوست، سکندر مجبور شو یوه زړوره اوغښتلی ټولی عسکر ئې دده دمقابلې دپاره هرات ته ولېږله، دی د نتیجی ترمعلومېدو

پوری په آریا اسپ (رامرود) کی ؤ، ساتی برزانت ناکامه شو مګر سره له ناکامی ناامیده نه سو، په پای کی هغه مهال چی سکندر په کندهار کی ؤ، ساتی برزانت دلبسوس په کومک سره بیا هرات ونیوی داپلا سکندر یوه لویه عسکری قوه دده ومقابلې ته ولېږله، په پای کی د ډېرو سختو جګړو په نتیجه کی ساتی برزانت دخپل وطن د آزادی په لار کی جار شو .



# بارزانتس

دمقدونی سکندر دیرغل په مهال کی بارزانتس د کندهار او سیستان حاکم و، ددغو سیمو دلښکرو سره سره دسکندر په مقابل کی دداریوش دلښکرو سره یو ځای شو، د داریوش ترماتی وروسته بارزانتس وخپل وطن ته راستون شو اودمقدونیانو ددفاعی مقابلې په ترتیباتو بوخت شو، مګر د سکندر د مقابلې په ترڅ کی بندی ونیول شو اودخپلې خاوری پر آزادی باندی جار شو .



# لومړی دیودوت

لومړی دیودوت د سکندر ترمړنی وروسته لمړی سړی ؤ چی په ۲۵۵ یا ۳۵۰ق،م کال ئې په باکتریانه (باختر) کی د استقلال

اعلان وکی، باختری میشت شوی یونانیان ئې دآریانا دولایتو حکمرانان کړل، تر

ده وروسته دده زوی دوهم دیودوت علاوه پر بریکتریانه هرات هم ونیوی اوتر

(۲۳۰ق،م) پوری ئې پاچهی وکړه .



# ایو تید موس

تردوهم دیودوت وروسته ایوتیدموس میدان ته راووت، ده د سلوس شاهی پاچا انتیوکوس وهجوم او

لښکروته لومړی دهرېو ود په سوا حلو کی، او بیا د بلخ په شاوخوا کی ماتی

ورکړه، اود خپل وطن استقلال ئې وساته، همدغه رنګه ایوتیدموس پر کابل او کندهار باندی دهندی موریائی امپراطوری سلطی

ته خاتمه ورکړه، دغه د آریانا ولایات ئې آزاد

کړل، اود خپل مملکت د شرقی جنوب وسرحد ته ئې

پراخه ورکړل، ایوتیدموس لومړی په ختیځ کی تر پامیر پوری ورسیدی په پای کی ئې کاشغر، یارکند او ختن

هم ونیول، په لویدیځ کې هم تر هریرود تیرسو، او تر سوزیا (نننی طوس) پورې مخ ته ولاړ ·

✡✡✡

## د متریوس

دغه نوموړی د ایوتیدموس زوی و، په (۱۹۰ق،م) کال د پلار تر مړنی وروسته وپاچهی ته ورسیدی، دې دخپلې کورنۍ یو ځلمې فعال کارګر او جدی غښ قوماندان دی چې د پلار دفتوحاتو لمن ئې پسې ارته کړه، هغه مهال چې تاکسیلا ئې خپل مرکز وټاکی، د

خپلو معروفو دوو قوماندانانو (منا ندر) او (اپولودوت) په سبب ئې دهند د راجپوتانه صحراو دواړو خواوته دهند د موریایي پاچهانو تر پای تخت تاپتسا لی پوترا (نننی پتنه) او اوجن (لویدیځی مالوه) پورې مخ ته ولاړ او هغه سیمې ئې دخپلو متصرفاتو ضمیمه کړلی ·
دغو فتوحات په (۱۷۵ق،م) کال پای ورسیدل ·

✡✡✡

## ایوکراتید

ایوکراتید دخپلو جګړو په نتیجه کی په (۱٦۸ق،م) کال د ایوتیدموس پر کورنۍ بری وموند باختري ئې خپل لاس ته را وست دده ټوله عمر هم په جګړو او یرغلو کی تیر شو ·

✡✡✡

## کوشانیان

دآریانا د باختری یونانو وروستنی پاچا هیلوکلس دی چې تر اوکراتید وروسته ئې پر ټوله هندوکش سلطنت کړی دی، دده په دوره کی په ۱۳۵ق،م کال کی داسکائیانو د یرغل او هجوم په سبب د باختری یونانو دسلطنت مرکز دهندوکش په جنوب کی وکاپیسا

ته رانقل شو، تردغه وروسته دآریائی اسکائی ټکمو د آریانا پر مختلفو سیمه لاس برشو، ددې په وروسته یوچی قبیلو اسکائیان د هندوکش و جنوبی سیموته وشړل په پای کی د کوی شوانګ «کوشان» قبیله پرروی کار شو له،

کجولا کدفیزس د دوی رئیس په ۴۰م تر هندوکش تیر شو، د باختری یونانو سلطنت ته ئې خاتمه ورکړه ·

✡✡✡

## ویما کدفیزس

په ۷۸م کاوکی تر پلار وروسته کجولا کدفیز د اقتدار واکی په لاس کی ونیولی، ده دخپل قلمرو حدود عین تر هند پورې

ورسول، او په چین کی ئې د تارام د دریاب تر حوزې پورې خپل سوقیات پر مخ بوتلل، ده په خپل ختیځ قلمرو کی د پنجاب تر نیولو وروسته دګنګا رود فتح کی او تر بناس پورې مخ ته ولاړ ·

✡✡✡

## لوی کنشکا

دغه حکمران د کدفیزس تر کورنۍ وروسته د ۱۲۴ او ۱۵۴ میلادی کلو په ما بین کی دآریانا و سلطنت ته ورسیدی ·

دغه ستر امپراطور د آریانا وحدت وساته دخپلو فتوحاتو لمن ئې ختیځ او لویدیځ ته و غزول، ده د نوی سرخخه پرهند لښکری ور رهی کړلی ·

تر تا پتالی او ترا (ننني پتنه) پوری مخ ته ولاړ، په چین کی ئې د خپل قلمرو حدود د تارم درود تر حوزی پوری وغزول. د کنشکا زوزاتو تر ۴۳۰ میلادی کال پوری سلطنت کاوه .



# یفتلیا ن

تر لویو کوشا نیانو وروسته کوچنیو کوشا نیانو یا کیدار یانو داقتدار واگی په لاس کی ونیولی، په دوی پسی وروسته سمدستی د ۴۳۰ تر ۴۳۵ میلادی کال پوری یفتلی قبائیلو باختریان اشغال کړل، او د یفتلی کورنی د سلطنت بنسټ ئې په آریانا کی کښېښود،

چی لومړی حکمدار ئې اختا لیتودی، یفتلی واکدارانو د ساسانی لښکرو سره چی په پاریس کی ئې غښتلی او زورور سلطنت درلود ډېر کلونه مقابله وکړله، او د دوی د تیری مخ ئې گرزاوه، لکه چی

د بهرام گور، دوهم یزدگر او پیروز سره د یفتلیانو جگړی ډېری مشهوره دی .



# آخشنو ر (خشنواز)

د میلادی ۴۶۰ کال په شاوخوا کی د یفتلی لوی او بزرگ پاچا د آریانا پر تخت کښېنوست چی آخشنور نومیدی او عربی مؤرخینو دغه نوموړی د خشنواز په نامه یاد کړی دی، د ساسانیانو د تیریو او یرغلو سره خورا کلکه مقابله کوله، لکه چی د ساسانی پېروز سره ئې

دوه کرته جگړه وکړله، چی لومړی جگړی ئې پیروز مغلوب کړ، او په دوهمه جگړه کی ئې پیروز ووواژه، او د پیروز سربازان ئې د یو ه مخه محوه کړل تر د ی حده چی د پیر و ز وروسته واکدارانو او طرفدارانو د یفتلی آریانا دولت باج او مالیه

ورکوله، آخشنور کابل او کندهار ا ئې د کلداریانو آخرنیو عناصرو څخه لاس ته راوستل، او هم ئې د اراکوزی او سیستان د ساسانیانو د سلطی څخه راویوست .

آخشنور د میلادی پنځم قرن تر آخر پوری سلطنت وکړ .

# تو را ما نا

د یفتلی دوری د مشهورو فاتحو پاچها نو څخه یو هم دغه تورامانا دی ده د هند په مرکز او شمال کی ډېر فتوحات وکړل، د ۵۰۰

میلادی کال په شاوخوا کی ئې ټوله هند شمالی او جنوبی قبضه وکړل، او مرکز ئې ننني مالوه وټاکل .



# میراکولا

میراکولا د خپل پلار تورامانا وروسته سلطنت ته ورسیدی د میلادی ۵۴۴ کال پوری ئې پاچهی وکړه

ده د پاچهی د دوری په پای کی د آریانا اصلی خاوره د هند څخه بېله شول په آریانا کی تیت او پرگېدونکی

وضعیت څرگندشو چی د اسلام تر ظهور پوری دغه وضعیت دوام وکړ په شمالی سیمو کی تر څه مهاله پوری غربی ترکانو او ساسانیانو نفوذ موند، او د هندوکش په جنوب او ختیځو نورو سیمو کی کوشانی یفتلی عناصرو په حکومت لاس پوری کړ .

# اسلامی دوره

داسلام دمقدس دین دانتشار او ظهور په مهال کی دآریانا ولایات اکثره دمحلی حکامو اوریسانو له خوا اداره کیدل، سره لدی هم ملی لښکر دخپلو ولایاتو تر پیرغو لاندی دوه سوه کاله د اسلامی اردوسره جنګیدی څو په پای کی په آریانا کی مسلمانانو خپل روش او رسم خپور کړ، په همدې سبب دآریانا آوریالی ټولی

په اسلامی مزایاؤ وپوهیدل نو پخپله رضائې قبول او ومانه او پدې خته څه سیمه کی د اسلام د نشر پیرغ ودریدی او ددې مقدس دین پیشوایانو داسلام دمقدس دین طریقه رواج او ترخورالویی ساحی پوری ددې مقدسی طریقی لمن وغزول تردی حده پوری چی ځینی مؤرخین وایی: چی په هند کی داسلام تاریخ په حقیقت کی په هند کی دافغان تاریخ دی .



# خراسانی أبو مسلم

دغه نوموړی په افغانستان کی دلویو سترو لارښوونکو څخه ؤ او په افغانستان کی ئې دیوه اسلامی مستقل حکومت په باره کی ډیر زیار ویوست ده ددې کار نیت او اراده وکړه چی داسلامی خلافت په دربار کی نفوذ پیدا کړی له همدی لامله دعباسیانو ملاتړ شو؛ او په ۱۲۹ هـ کال کی ئې په ښکاره ډول دامویانو پرځای باندی دعباسی خلافت ووجود ته اقدام وکړ، عباسیان ده په همت او مرسته په

۱۳۲ هـ کال کی په خپل مراد ورسیدل او عباسی خلافت میدان ته راووت، تر دغه وروسته ابو مسلم ومرو ته راغی او د اسلامی خراسان اوماوراالنهر او دفارس دښار دواکداری واګی ئې په لاس کی ونیولی او دخپل دولت دآزادی په هڅه کی شو، عباسی دربار دده ددې قصد څخه وبیرېدل او په چم او حیله ئې د ده کار پای ته ورساوه (۱۳۷) .



# پوشنجی طاهر

دغه نوموړی داسلامی دوري دافغانستان دآزادی غوښتونکو او حکمدارانو څخه یو برجسته او ستر نامی قائد دی دعباسی

هارون الرشید دزوی مامون الرشید پر خلافت باندی دکښېنولو په باره کی ډیر خدمتونه وکړل،

په ۱۹۸ هجری کال کی مامون الرشید د طاهر د خدمتو په بدل کی ده ته مهم کارونه وسپارل تردی پوری چی په ۲۰۵ هـ کال

کی دخراسان په حکومت مقرر شو، ده په خراسان کی خپل دغه پخوانی د زړه ارمان وکینښ، په ۲۰۷ هـ کال کی ئې د څلرمی خور (جمادی الاخر) په ۲۴ نېټه دخراسان کامل استقلال اعلان کړ، مګر په هغه شپه

په یوه أسرار آمیزه ډول سره مړ شو، زه وېړ دوطن دغه ستر قوماندان چی غالبا د

عباسی دربار په لاس مسموم شو یو لوی سرمشق ئې دخپل وطن د اولاد دپاره پرېښود .



# صفاری یعقوب

لیث

آسر پوشنجی طاهر وروسته هغه څوک چی وی کولای شوای چی اسلامی مستقل حکومت په افغانستان کی تشکیل کړی .

سیستانی صفاری یعقوب لیث دی، دغه سړی چې د رویګرۍ د کسبه څخه دسیستان دعیارانو وقیادت ته رسیدلی ؤ په پای کې د محرمې په ۲۵ نېټه ۲۴۸ هـ کال دسیستان دحکومت پر تخت کښېنوست،

یعقوب ژر تر ژره دهلمند پر حوزه، هرات، پوشنج، فارس او کرمان کابل، بلخ، تخارستان، نیشاپور، او ګرګان باندې غلبه وکړه تر

لاس ئې کړل، تر دغه وروسته ئې دبغداد دعباسي خلیفه په مقابل کې په مخالفت لاس پورې کړ مګر د عباسي قواو په مقابل کې تر دیرالعاقول «اوسنی قصر شیرین» تیر نشو په لار کې مړ شو.



# صفاری عمرو لیث

تر یعقوب وروسته دده ورور عمرو لیث وسلطنت ته ورسیدی، ده دخلافت ددربار ه څخه پر دغو لاندې ولایتو فرمان درلود: لکه دفارس ولایات، کرمان، اصفهان، ګرګان، طبرستان، سیستان، هند او سند، او هم ئې پر بغداد او حرمینو قوماندانی درلوده، ده

څو واره په فارس کې خپل سوقیات عملي کړل، او په شیراز کې د خلافت پر قواو غالب شو، په پای کې دغه صفاری ستر واکوال په بلخ کې دساماني اسمعیل امیر په مقابله کې ونیول شو اود بغداد په بندیخانه کې مړ شو.



# سامانی اسمعیل

دغه بلخي نژاده ستر واکوال د ۲۷۹ هـ کال په شاوخوا کې په سمرقند کې داقتدار پر ګرته راووت، دغه نوموړی دستې دساماني

مقتدر دولت بنسټ کښېښود، دسیحون هغه پلو ته ئې ډېر فتوحات وکړل، او په لږ مهال کې ئې ورو، ورو افغاني اود ماوراء النهر دولتونه سره یو کړل، بیائې دفارس پر ملک حمله وکړه دری او

طبرستان ولایتونه ئې ونیول.

ساماني اسمعیل په ۲۹۵ هـ کال کې وفات شو.

# غزنوی

### سبکتګین

دغه نوموړی دغزني دستر وپاچهانو څخه دی چې په ۳۶۶ هـ کال کې وسلطنت ورسیدی، دده په پاچهۍ کې دغزنوي ددولت د بخت ستوری دختیځ په آسمان کې وځلېدی.

سبکتګین دخپل سلطنت په لومړیو کلو کې د بست او قصدار ولایت پخپل قلمرو کې د آریانا د شرقي ولایتو دګډون په هڅه کې شو، دغه دافغانستان باستاني سیمې ئې دغزني د ملي حکومت سره یو ځای کړې؛ دغه نوموړی په ۳۸۷ هـ کال کې وفات شو.



# غزنوی سلطان

### محمود

دسبکتګین زوی سلطان محمود د غزني ستر امپراطور په ۳۸۸ هـ کال په غزني کې وسلطنت ته ورسیدی

ددغه ستر سلطان شهرت او مقام په څو محدودو لیکو کې نه ځائیږي چې موږ ئې خلاصه کو، زموږ د ملک نظامي عظمت دده په عصر

کی ونهایی عروج ته ورسیدی، دغزنویانو دسلطنت دقلمرو لمن دری او اصفهان څخه ترقنوج او ګنګا پوری غزیدلی وه دده پهوخت کی دغزنویانو نفوذ په عالم اسلام کی خورا ډیر شو، غزنوی لښکر د کسپین او داورال دجهیل دغنډو څخه دبحر هند ترسواحلو پوری

تل په حرکت کی و په ختیځ کی ئی ۱۷ واره سوقیات عملی کړل، په هروار کی غالب او فاتح شو، دی په ۴۲۱ه کال کی وفات سو .



# غزنوی سلطان مسعود

دی دسلطان محمود غزنوی زوی دی، تر پلار وروسته ئی د اقتدار واګی په لاس کی ونیولی، ده تر پایه کوښښ وکړ چی خپل د پلار قلمرو دخپلو زورورو رقیبانو او حریفانو په مقابل کی وساتی ، پدې کار کی تر یوه حده پوری موفق هم شو؛ سلطان مسعود په ۴۳۸ه کال ووژل شو .



# غوری سلطان غیاث الدین

دغه نوموړی دافغانستان دستر وسلطانانو څخه دی چی په ۵۴۹ه کال ئی غزنی دغزنوی ترکانو دتسلط څخه ویوست، غوری دولت ئی پراخ کړ، دوه کاله وروسته ئی هرات هم ونیو، او د غزنوی دولت پرکنډوالـو ئی غـوری ملی سـتر دولت تشکیل کـړ ، سلطا ن

غیاث الدین تر ۵۹۹ه کال پـوری دخپلو نیکه ګانو پر ټولو سیمو حکمرانی و کړل .



# سلطان شهاب الدین غوری

معزالدنیا والدین محمد شهاب الدین غوری یو ستر حکمران او غوری دولت او مما لکو ته ئی ډیره پراخی ورکړه، ده دخراسان یوه برخه دسلجوقیانو څخه ونیوله، دخپلو پرله پسی سوقیاتو په مهال کی ئی په ختیځ کی سند او ملتان په ۵۸۱ه کال دعربی حکمرانانو د

لاس څخه وایستل دپاته غزنویانو آخرنی حکومت ئی په ۵۸۲ه کال دلاهور څخه دپښو واچاوه، په هند کی ئی د چوهان راجپو تانو،

د (پرتهوی راج اجمیر) پر پیاوړی قبیله بانـدی یرغل ور وړ مغلوب یـې ئی کـړه ۵۸۹ه تقریباً ټوله شمالی هند ئی تر خپل نګین لاندی

راووست، همداسی نوری سیمی لکه قنوج، ګوالیار، بندلخند، بهار او بنګال هم پرله پسی د شهاب الدین د سردارانو په لاس فتح سولی

او ددغـو سـیمو وګـړی اوسیدونکی مسلمانان شول همدغه لومـړی وارو چی

ټوله هندوستان لړو ډیـر اسلام قبول کړ، ده خپل اکثر فتوحات دغزنی د مرکز څخه دخپل ورور سلطان غیاث الدین غوری تر فرمان لاندی

وکړل او د ۵۹۹ هجری کال وروسته و سلطنت تـه ور- سیدی، څو په پای کی په ۶۰۲ه کال چی دهند څخه راتلی په لار کی ووژل شو .



# پـه هند کی

## افغانی سلطا نا ن

د تیمـو ر ا چنګیزی ا ستیلا پـه مهـا ل کی د ٦١٣ تر ۹۳۲ ه کال پوری دوو سو و کـسو ا فغا نـی پاچهانو دهند (نور بیا)

«۴»

دوست محمد [ ترہ کی]

# دګرمسیر د کلتور وضع

## «دوهم فصل»

دغه رنګه ځوانان هلکان، زاړه او ښځي ئې داختر دمېلو سره ذوق لري، ځوانانئې غېږ باسی د سپوږمۍ په شپه دکلي په منځ کی ټولېږی غزلی وایی، ښځي ئې هم دسپوږمۍ په شپه دکورو څخه راوزی غزلی وایی، دريې وهی او اتڼ کوی. دغه رنګ دګرمسیر په خانانو او ملاکانو کی دښکار دویشتلو اوه آسانو ا ېو اوښانو د ځغلولو ذوق هم سته.

په آخر کی بایدداهم واضح شی چی په هغه محیط کی سلیقه د ژوندانه په اکثرو چارو کی کمه یا نه لیدل کیږی لباس، خوراک او دګذاری ځایونه ئې ډېر ابتدائی او بی سلیقی دی په کورو کی

نظافت نسته او دجوړښت په حصه کی ئې هیڅ ډول سلیقی په کار نه ده لوېدلی او ددوی دمزدور کاره او بزګرانو کورونه امکان لری چی دسلو کالو د مخه کورو سره فرق و نه لری که څه هم دخانانو کورونه د بزګرانو و کورو ته نسبتاً درست او ټینګک دی ب‌ا‌ه‌ ډ‌ه‌ ېڅ ډ‌ ل ... پکښی نه لیدل کیږی.

دانسانانو او چارپایانو داستوګنی ځایونه عموماً په یوه کور کی سره نژدی دی دکورو ساختمان ابتدائی او بی معنی دی په لباس کی منظور فقط دبدن پټوالی وی باید ټینګک وی او دوام ولری مګر ځوانانی ښځی او نارینه دلباس په جوړولو کی عموماً ددوی

هغه صحرائی سلیقی او ذوقونه په کارا چوی، دکمیسو ګټکرونه اولستوڼی دېر توګو پایڅی نراوښځی کله، کله خامک کوی، مګر عموماً دسلیقی خاوندان که نړوی که ښځه هغه څوک دی چی اقتصادی وضع ئې ښه وی.

دخبرو طرز او اصطلاحات :-

دګرمسیر وطنوال خلګ په پښتو ژبه خبری کوی دخبرو طرز ئې دهلمند دنورو سیمو په شان دی، دوی په پښتو کی کندهاری سبک تعقیبوی مګر دومره فرق لری چی دکندهار دپښتو لهجه ښاری اما

دګرمسیر دخلګو دپښتو خبری صحرائی لهجه لری دغه ډول ددوی د غزلو ویلو طرزهم دکندهار دخلګو دغزلو سره فرق لری.

په هغه ځای کی خلګک په خبرو کی دفصاحت او بلاغت مراعت نه کوی لنډو عبارت په اوږدو او متعددو جملوکی راولی.

اکثره بی سواده خلګک ئې دمبتداء او خبر مراعت هم نه کوی.

بزګره طبقه عموماً دوه نفره دلیری فاصلی څخه په لوړ آواز خبری کوی دوی ځینی لفظونه او اصطلاحات

لری چی په کندهار کی نه استعما لیږی چی دلته ئې څو دمثال په ډول راوړم.

د ګرمسیر - کندهار

اصلاحات

کورته دی - په کور کی دی

یو! څونه ښه دی- داسی! څونه ښه دی

چندک اهمیت نه لری - چندانی اهمیت نه لری.

کور که ځم ـ کور ته ځم
ډېره مې آیبت کړه ـ ډېره مې وغوړځول
میان خانې ته ولاړې ـ مهمانخانې ته ولاړې
مړی ثواب که ـ مړی ته غسل ورکه
خپله دعوه شړم ـ خپله دعوه کوم
دا کتاب د هغه بل استربل دی ـ دا کتاب تر هغه ښه دی
زما قلم بې دی ـ زما قلم ښه دی
زموږ کور آزاده دی ـ زموږ کور لیری دی
والله څو کور ته ولاړم ـ والله کور ته ولاړلم

ژبه، نژاد :ـ
دهلمند د ناوې ټوله خلک پښتانه او آرین نژاده دی پوستونه ئې سپین یا غنم رنګ دی ښځې ئې قوی او قدونه ئې اوسط دی. په پښتو خبری کوی .

د جنوب و خوا ته د ریګستان په برخو کی بلوڅان ژوند کوی چې نژاد ئې آرین او رنګ ئې د لمر حرارت په نسبت تور یا غنم رنګ دی ځینې ئې سپین رنګه هم پکښې دی. سر بېره پردې په هغه ځای کې یو بله طبقه ژوند لری چې ځان ورته وایی کسب ئې د سر او بېړو خرېل، ساز کول او ډول وهل دی ابتدائی او ساده آهنګری او نجاری هم کوی .

دغه رنګه یوه ډله خلک چې په خلیفه ګانو سره مشهوری ده ژبه ئې پښتو دا میر بلند صاحب د زیارت پرشا وخوا د یوه کلی په ډول ژوند لری قوم ئې عرب دی او ژبه ئې پښتو ده، دا خلک رشتیا هم ۹۳ پېړی ده مخه دامیر بلند صاحب ـ ره د عربستانه یوه کورنۍ راغلی وه چې نن ورځ یو مکمل کلی او ډېر کورونه ځینې جوړ شویدی د دې خلکو نیکه ګان عرب خو دوخت په تېر ېدو ئې اوس اولادونه پښتانه شویدی .

د پورتنی نژادو څخه پرته بل نژاد د ګرمسیر په خلکو کی نه لیدل کیږی .

قومونه :ـ

د ګرمسیر خپلک پر مختلفو قومو وېشل شویدی چې ډېر ئې نورزی، علیزی، اسحقزی، پوپلزی، او بلوڅ دی سر بېره پردې لږ شمېر سیدان دی، عرب او غلزائی قومونه هم هلته سته، د نورزو قوم چې تر نورو ډېر دی د منطقی د سره تر آخیره پراته دی .

د دولتی احصائیې د شمېر له مخې د دوی تعداد تر علیزائی قوم ډېر دی چې د منطقی په سر او منځ کی پراته دی .

اسحق زائی او پوپلزائی قومونه چې د منطقی آخیر ته پراته دی نفوس ئې کم دی .

عرب په یوه محدود کلی کی د منطقی په سر کی د امیر بلند پر شاو خوا او سېږی سیدان او غلزائی قومونه ډېر لږ او متفرق دی

ځمان یا دلاکان چې نژاد ئې تور دی په هر کلی کی سته

سر بېره پر پورتنیو قومو د هغه منطقی په ریګستانی برخو کی یو تعداد بلوڅان هم سته چې اکثره په بلوڅی او بعضی په پښتو ژبه خبری کوی

د عرف و عادات او تقاضا د نقطه نظره د ګرمسیر تر خلکو ساده او ابتدائی دی .

هلته د وکالت د پاره نفر د لیاقت او کفایت له مخې کو ښښ کیږی چې انتخاب شی بلکه یو حساب هلته موجود دی

که د شورۍ وکیل د یوه قومه وی د مشورۍ د مجلس وکیل حتماً باید د بل قومه څخه انتخاب شی دغه رنګه که یو کال وکیل د یوه قوم څخه

ولاړشي بل کال بایدبل قوم څخه وټاکل شي اکثره کلونه دوکیلانو دانتخاباتو په وخت کې نه سره قانع کیږي اومناقشې ئې زیاتیږي .

دوی عموماً خپلوی دخپل قوم څخه دباندی نه کوی که ښځه ورکوی اویائې غواړی کوښښ کوی چې دخپل قوم څخه ئې وی . خانان اوملاکان دګرمسیر په کلیوکې چې نه ئې پیژنی په کلي کې دهمسایه په پول ځای چاته نه ورکوی اوکوښښ کوی چې دخپل صالح سیمه داراون په کلي کې یوځای کې .

عمومي عقیدی :-

دګرمسیر وطنوال دعقایدو دنظره پاك او سپیڅلي مسلمانان دی پرپنځه وخت لمانځه ټوله خلك ټینګ دی په هرکلي کې یو یا دوه مسجدونه ستاه چې هلته ملایان (روحانیون) استوګنه کوی .

دکلي ټوله خلك ملااوامام ته په درنه سترګه ګوری اواحترام ئې کوی دده ټوله مصارف دکلي دخلکو دخوا د ذکوة یا خیرات په پول ورکول کیږی اود کاله ټاکلي اندازه غنم، اوربشي او جواری دوه یادری خرواره (۲۰۰ یا ۳۰۰ دکندهاری په منه) ذکوة ورکول کیږی .

ملایان په مسجدوکې یویادوه نفره طالبان هم لری چې هغوی دآینده ملااوامام په پول ځانونه تربیه کوی . ملایان او طالبان

بیله امامت اود کلي وکوچنیانوته د ابتدائی دیني کتابو دتدریس څخه نور اجتماعي کارونه لکه دهقاني، مزدوری، کښت ګری، او نور نه کوی اونه دهغه ځای خلك د دوی څخه داتوقع کوی چې نور کارونه دی دنفقی دبرابرولو دپاره وکی .

هلته پیران او مریدان هم سته مریدچې دپیرسره مخامخ سی لاسونه ئې مچوی اوهرامرته ئې آماده وی . پیران په هرکلي کې نمایندګان لری چې په هغه کلي کې د(پیر) دطرفه دیني تبلیغ کوی او مریدانوته دپیر درویي (طریقې) لارښودنه کوی ، دغه پیر نمایندګان چې په کلي کې وی (خلیفه صاحب) بلل کیږی .

خلیفه صاحب دائماً دخلکو توجه دپیر دطریقت وخواته جلبوی او نوی مریدان ورته پیدا کیږی په عین حال کې خلیفه صاحب هم د هغوی په منځ کې دعزت خاوند دی .

خلیفه په هفته کې یووار په کلي کې دشپې د خوا مریدان په یوه ټاکلي ځای کې سره راټولوی، په هغه محفل کې یو نفر چې ښه آوازلري نعت شریف وایي او مریدان تر احساساتو لاندی کیږی حلقه(۱) کوی اوژاړی، داوضع دشپې تر ډیروخت یعني تر سهاره شروع وی په هغه ځای کې زړې ښځې چې مریدانې دی هم راځې وروسته د(حلقې) محفل ختمیږی اودسهار لمونځ کوی .

دغه رنګه هغه کسان چې ځانونه ئې په ژوند کې پیران یا خلیفه ګان بللي دی او مریدان ولری پسله مرګه ددوی په قبرونو باندی بیرغونه د روی او مجاور (دپوال) پرراګرزوی شاو خوائې ځو مشهر یاغیر مشهر نهالان ایږدی وروسته ئې د پیریا خلیفه صاحب زیارت بولي چې ټوله نر اوښځې چې کمه مریضی ولری د اجتماعي یاانفرادی مشکلاتو سره برابرسي نوو زیارتو ته د وسیلې په طریقه ورځی

---

(۱)- حلقه یوډول آواز دی دخولی ئې باسی

او دڅان سره چرګه پسه یا کم بل خوراکی شی او یا نقدی څو پیسی وړی او د زیارت د مجاور (او سیدونکی) ته ئې ورکوی او قبر ته په عجز سره دعا کوی او خدای ته ئې شفیع کوی هغه شی چې د زیارت مجاور ته ئې ورکړی د (دروږ) په نامه ئې یادوی ·

د پیرانو او ملایانو دژوند په وخت هم د هغه محیط نر او ښځه د مشکلاتو د حل کیدو او د مریضی په وخت کی و دوی ته مراجعه کوی او دوی هم تعویذونه، څابنتونه چی آیاتونه او یاد خدای (ج) نومونه دی چی پر کاغذ لیکل سویدی، مراجعینو ته ئې ورکوی ·

او یو بل هدایت ورکوی، هغه خلک بیا تعویذ ته د ټوکر یا څرمنو پ... بنونه ورکوی او څابنتونه په اوبو کی مینځی چی نوشته ئې په اوبو کی پاکه شی بیا نو هغه او به چښی که ئې مقصد ترسره نسی یا صحت پیدا نه کی د احترام او عقیدی د رویه چی پر پیرانو ئې لری څه نه وایی او که خدای صحت ورکړی د دوی مقصد ترسره شی یا صحت پیدا کی نو پیر یا هغه چا ته چی تعویذ ئې ورکړی وی هغه ته بنه تر اعقیده پیدا کوی ·

د هلمند په ټولو سیمو کی چی ګرمسیر هم ور... ره شامل دی خلک د مسلمانی پر عقایدو ډیر ټینګ دی ·

زیارتونه :-

د ګرمسیر په منطقه کی د هلمند د نورو سیمو په شان د روحانیونو او د تصوف د خاوندانو قبرونه سته چی د مرګ نه وروسته ئې خلکو قبرونه بنه جوړ کړیدی ( شاوخوا ئې ونی او دیوالونه پر را ګرزولی دی او د قبرو د سر و خوا ته د لرګو خادی ئې درولی چی د ټکرانو بیرغونه پر ځړوی) چی و هغو ته زیارتونه وایی ·

زیارتونه د ګرمسیر نر او ښځه په عقیده لری د سختی یا مریضی په وخت کی ئې خدای ته شفیع کوی. په هغه ځای کی ښځی د زیارت څخه د کومک غوښتونه (مرادونه) وایی ·

مشهور زیارتونه ئې دادی :

۱- امیر بلند صاحب: چی د درویشان د کلی د شمال شرق و خوا ته په یوه ټوټه ریګ باندی پروت دی ·

۲- ملا کبلی اخند: چی د هرارجفت د کلی د شمال و خوا ته د ولسوالی مرکز ته نژدی پروت دی ·

۳- سید نورجان آغا : د لکی په کلی کی پروت دی·

۴- حاجی نیکه د لکی په کلی کی پروت دی ·

۵- سخی نیکه: په میان پشته کی په آبدی خوب بیده دی ·

۶-خواجه غیب: په میان پشته کی آبدی آرام لری ·

۷- ګل آغا: د درویشان په لوی کلی کی قبر لری چی یو ه بنه دونو تکیه او ماجر هم لری ·

۸- سید محمدحسن آغا د ده عمر د ذکریا په کلی کی تیرشوی او هلته پروت دی ·

۹- ژړ آغا: د بنادر د منطقی آخر ته په آبدی خوب بیده دی ·

۱۰- بابکو بابا: د اسړی هم په بنادر کی پروت دی ·

۱۱-آدم جان آغا : د بګت په کلی کښی چی تر بنادر وروسته دی پروت دی ·

۱۲- سید رنځور آغا: تر بګت وروسته چی د اوسنی ګرمسیر نهائی برخه ده او لنډوی نومیږی هلته پروت دی ·

(نور بیا)

# د موسی جان او ګلمکۍ
# د کیسی لنډیز

آس ئې په چارنا له ترسترګو ئېهام کړ، د سهیلي نورو ماینو دستي مخ د کور پر خوا ونېوی او خلکو ور و څخستل سهیلي یې

خبر کړ (چې ببۍ) یو سړی وتښتوله .

سهیلي هم دستي سړی پسي ولېږله خو چایي بیا پته معلومه نکړه، (ببۍ) ورکه شوه، د سهیلي په زړه کی داغ پاته شو نو پسدی فکر کی شو چی یوه بله ښایسته نجلۍ و غواړی چی (ببۍ) ئې هېره شي .

سهیلي چی هره شپه پر بوزی په خیال کی د ګرده کلي پېغلانی چوڼ کوی خو یوازی د ببۍ خور ګلمکۍ لازمه بولی چی بایـد

ځان ته ئې کښېنوی، ګلمکۍ چی د موسی جان په نامه ناسته وه نو سهیلي ته ئې لوی مشکل پېښ

کړی و. خو په پای کی ئې د ځان سره فیصله وکړه چی موسی جان به د منځ څخه و باسي او په یوچم به ئې خوله ور پټه کړی .

سهیلي پس له څو ورځو د هغې مور ته داخبره وویل چی ګلمکۍ ورته ورکړی د هغې مور ورته وویل :

چی داخو مېړه لری ده پروا په ونه کړه او کله چی ګلمکۍ خبره شوه نـو پر ځان وبېریده او وپوهېده چی سهیلي زورور سړی دی نه دی پریږدی راځه د چالا-کی د مخه معامله ورسره شروع که .

نو یوه ورځ ئې سهیلي ته سړی ور واستاوه او ورته وې وېل چی زه به تا مېړه کړم خو زما دا یو شرط ومنه چی پر شپېته ګزه دار یـو کـټوری کښېږده د وطن

ښکاریان در وغواړه هـر وخت چی هغه وویشتل شو په هغه ورځ به زما او ستا د لیدو او مـلاقـات شـپه وی .

سهیلي هم دغه کار وکړ هره ورځ به لی پولی ښکاریان ورځی او نښان ولـی او غواړی چی د سهیلي انعام وګټي .

د ګلمکۍ لـدې کاره څخه مـطلب دا دی چـی ګوندی په دغه وخت کی به موسی جان د پوې خوا څخه پیداشي او دا به د سهیلي له

پنجی څخه خلاصه کړی .

ولیجان چی د سهیلي څخه ببۍ وتښتوله نو یوه وطن ته ولاړ او هلته ئې په بزګری او مزدوری شروع وکړه خو بیا چی څه پیدا

کوی په هغه کور چلوی او یوه کچنۍ مهمان خانه هم لری چی ځوانان پکښې ټولېږی پدې منځ کی چی ببۍ ولیجان ځان ته په نکاح کړه یـو زوی ئې ځـیني

وزیږیدی چی د (میر ولی) نوم ئې پر کښېښود .

د ولیجان مهمان خانی ته د هر ځای شـوقی ځوانان راځی یوه ورځ د ده مهمان خانی ته یو ځوان راغـی چی په څـېرو او څېرونو کالو کی ئې د ځوانیه ښکلا نه وه ورکه شوی د ده سره یو رباب هم و پس له ستـړی مشی ولیجـان ورسره کښېنوست او

پوړی ته ئې وګرځاوه، چی پوړی وخوړه شوه ولیجان ورته وویل:

چی ځوانه ته خودی شهباز را و باسه او یوه پنجه رباب وواهه چی د ځوانانو زړه په بیدارشي

هغه ځوان هم رباب واخیست او داسی د سوزه ډک رباب ئې وواهه چی ګرده منګ ورته ولاړل .

ولیجان ورته وویل: دښمنۍ هم دلې پاته سوه څو داوچې دا ربابي ځوان د ولیجان ملګری شو او دده سره هره ورځ او هره شپه وینې .

یوه ورځ ولیجان پوښتنه ځینې وکړه چې ستا نوم څه دی ؟

اود ژوند توره ماجرا دی راته ووایه ځوان ورته وویل :

زما نوم موسی جان دی اود یوشرمښ صفته خان دلاسه راورك شوی یم ښځه مې ترشا پاته ده او زړه ئې د وینو ډك دی نو دادی چې پروطنو ګرځم او پدې رباب غم غلط وم .

ولیجان چې دخان د نامه پوښتنه ځینې وکړه او هغه د سهیلي او ګلمکۍ نکل ورته وکړ ولیجان وپیژندی ځکه دګلمکۍ

خور (ببۍ) چې اوس ده ته ناسته وه هغې ګرده نکلونه ورته کړي وه نو ولیجان ورته وویل چې:

دګلمکۍ خور ببۍ اوس دده په کور کې ده هغه چې ولیجان دستې موسی جان کورته بوتی او هلته ببۍ هغه وپیژندی او دوی سره خپلوان شوه .

دا مهال دولیجان او موسی جان ملګري ښه سره ټینګه سوه یوه ورځ دواړو سلاسره وکړه چې د سهیلي له پنجو څخه بسه

ګلمکۍ هم خلاصوی نو دواړه سره رارهي شول او دګلمکۍ کلي ته راغلل هلته ئې په پټه ګلمکۍ هم خبره کړه ګلمکۍ خوشاله شوه او دستې ئې خپل کالي سره

ټول کړل چې په یوه مناسبه موقع کې دوی سره ولاړه شي پدې منځ کې سهیلي ته پټ خبر ورسیدی چې ولیجان او موسی جان راغلي دي نو

هغه مهال چې ګلمکۍ په پټه دښځی پلاس دوی ته ډوډی لیږل د سهیلي په ټوټك یوې زړې ښځې پټ

په ډوډی کې زهر ورګډ کړل کله چې ډوډۍ ورغله موسی جان خپه ؤ ډوډی ئې خواته ‌‌ونکیده خو ولیجان

چې ډوډی ئې وخوړل بس دستې ناجوړه شوه اودواړه په چابکی دخپل کور پر

خوا رارهي شوه هلته چې ورسیدل ولیجان مړ شو د

ولیجان دمرګ وروسته موسی جان ورځ په ورځ زمول کیږی دولیجان زوی

(میر ولی) چې یو تندی ځلمی دی هره ورځ موسی جان ته وایی چې درځه د سهیلي څخه کسات « انتقام » واخلو .

پس له څه وخته بیا د سهیلي په کلي کې چوك چوکه شوه چې موسی جان راغلی دی .

دا وار موسی جان او میر ولي دشپې ناڅاپه د سهیلي په کلا حمله وکړه او پس له یوې کلکې جګړې ئې ګلمکۍ راوایستله، د آس ترشا ئې سپره کړه او بوئې تلل .

تردې وروسته نو ددوی اود سهیلي تر منځ جګړې روع شوی او سهیلي ته اوس ددوی ځای معلوم دی نه ئې پریږدی ودغسې

سړی پسې لیږی او حملې پر کوی پدې ترځ کې موسی جان از بستی چې غموئې زړه لاندی کړی اود ملګري ولیجان مرګ لیونتوب

ور پیښ کړی همیشه پر غرو ګرزی د سهیلي سره (میر ولي) بدی پالی اود کورنځی ساتی اودا مهال ګلمکۍ ته ګروم ورلوپدلی او

نری رنځ (سیل) ئې په ځان شویدی پس له څو وخته میر ولي هم په جګړه کې زخمي شو او کورته راغی پس له لږ وخته څخه مړ شو .

داوخت نو یوازی ښځی پاتی شوی سهیلي چې کورئې بې سرپرسته و لید نو ګلمکۍ یې کورته بوتله .

هغه مهال چې دې ته د موسی جان دمرګ خبر ورسید نو زاره ترقی او مړه شوه سهیلي چې دګلمکۍ په مرګ بیا یوازی پاته

شو نوشهوت ئې پهزور راغی اونیت ئې وکړچې دولیجان خور (تانو) وغواړی ځکهده (تانو) لیدلیوه چې ډېره ښکلې ښځه وه شهوت پرستخان (تانو) تهخبردرکړچې دده غوښتنه ومنی او په مېړهتوب ئې قبول کی تانوچې پخوالا دسهیلی ځخه د انتقام اخستلو لاری پلټلی نو دستی ئې دسهیلی غوښتنه ومنله او ورته ویویل چې؛ ستاسره مینهلرم نوژرمی درولاړهکړه .

سهیلی پهخوشحالی دوادهشپه جوړهکړه او کلهچې سهیلی اوتانو مابنام پهخونهکی سرهیوځایشوهنو (تانو)دروازه وتړله اوهوې توری ئې راوایستلی اوپهډېرهآرامی ئې یوهتوره وسهیلی ته وروغورځوله او ورته وې ویل :

نامردهسهیلیه تابهښه خیال کړیوی چې د ولیجان پرخور به ښه واړوی دادی نن زما اوستا دجنګکشپهده په نامردی دیهم نهوژنم اودادی یوتوره همپه لاس درکوم را ولاړېږه چې توره پهتوره ئې درسره معلومه کړم یابهدی نن پهوینوځان اوبهکړم او یا بهزه همدموسی اذولی اونوروموړو پرلار ولاړهسم .

سهیلی حیرانشو پهناچاری یې توره راپورته کړه په خونه کیدتوری جنګک شروعشو سهیلی کوښښکوی چې پر تانو یو کاری واری وکړی خووارئې نه برابرېږی ځودتانو تورهئې پر مغزی برابرهشوه اوپه وینولژندهپرېوت سهیلی مړشواوتانودپه وینو لړلی توړئې سرهراووتله ناریئې کړی خلکو واوری نامرده سهیلیمی مړکی .

دسهیلی په مرګک هیڅوک خوابدی نه شو دهغه ډېری ماینی چې تریږی رسیدلی وی پر آرامه شوی د کلی بزګرانو او کلیوالو دده په رمګک خوشالیوکړه .

(پای)

☆☆☆

نباغلی «بینوا»

# چاته وژاړم....؟

په خواږه خوب بیده وم...هیڅغمراسره نهؤ ؟ داسی خوب چې لهخوبههم ناخبره او نه پوهیدم...

نهمی دپلټون د اورلمبه لیدلیوه ... نه چیرته د فراق په توره ټپاره کی ننوتی وم...هیڅ نهؤ-!

ستادمینی لاس راغی زهئیوینښ کړم...

خو- پوه نهشوم چې څنګه- ؟

شاوخوامی کتل... د ځوپه تنګک کنډولی کی بندوم...ورپرد پدم- مګر څهچاره ؟

ستادمینی واکډېردی، چې لههغه لامتناهی فضا ځخهئې پدې کنډولی کی ننه ایستلم...

آخ- چاتهوژاړم ؟

دخپلزړه په خوږ به څوک پوه کړم ؟

هیچاته او[هیڅوک !

خو، هو تاته به وایم




«حمید»

# کاروان د مشکو

څکه نـه لـری پـروا بتـان د مشـکو
هـر کمند لری د زلفو کان د مشـکو

چی ئی دلته باد پر زلفو برابر سی
په خوتن کښی شی قیمت ارزان د مشکو
که اورنه وای آشنائی د آهو چشمو
نه به وای هسی تورسوی ځان د مشکو
چی وریځ دیار دخط وربا ندی راسی
اوروی می پر لپمو باران د مشکو
زلزله دیار دخط د را تـلو راغله
نړوی می پر تندی آسمان د مشکو
دا ئی خط نشونما کاندی په مخ کی
چی پر مځکه ځی دلمر کاروان د مشکو
چی له غمه ئی دخط سرپر گریوان کړم
سی می ډك لکه نافه گریوان د مشکو
دا د ترکو دمیکونو زلفو تور دی
چی وگړی پر کـوی گمان د مشکو

دا شرف د عاشقی نـدی نـوخـه دی
چی سینه سوه د(حمید) دکان د مشکو

# والوتم (۱)

والوتمه والوتم، دغرو له څوکو والوتم
راغلم د موجواو توفانو سمندرونو ته
ستر جیحون می پر ښود چی ټکری خوری له غرو سره
ځان می که ګذار د سمندرو ټکرو نو ته
زه وم الوتونکی د کمرونو لا مېوزن ته وم
بازومه د غرونو توفان راوړم دریابونو ته
نه لړی او نه لری دغرونو نشه نه لری
هرڅومره چی ځیرشمه اوبدود ساحلونو ته
هره ورغ فوجی (۲) ته رسوم دهندوکش سلام
وړمه د لویانو پیغامونه پیو ندونو ته
یو وخت کی غوړیږی دفوجی اوهندو کش ګلان
یو به سم ګلونه د جاپان خپلو ګلونو ته
جوړی به غنچی کړم د فوجی له سلامونو نه
کی به بدم غنچی د خپلو غرونو قدمونو ته
یو به د بزګرو سلامونه شم بزګرو ته
ګواکی در ناوی د پاکوزړونو پاکوزړونو ته
جوړ به د ګیشا (۳) دزلفو تارنه ربابونه کړم
وبه ښیم د وددونو نو ونو نو ته
(س، ل)

---

(۱) دا شعرهغه وخت ویل سوی چی دغه نازک خیاله شاعر جاپان ته تللی
(۲) دجاپان تر ټولو جګ اومقدس غردی، چی په وزن دکوچی ویل کیږی
(۳) مخصوصه جاپانی پیغلی دی، چی غمجن خلک خوشالوی اوخندوی ئې



ښاغلی «رشاد»

# صیاد ه !!!

نه پتن غونډ ی مین پر هغه شم یم
چې شرر ئې دشهباز د ځالې اور شي
تر ښارګک دربا ندی ګراني ئې رشتې دی؟
هغه دام چې حریت پکښې نسکور شي

✲✲✲

هغه وینې ستا د لومو سرخرو ئې ده ؟
چې داری وهي د مات وزر تر څو کو
چې رهي شي د چمن په بېلتانه کې
نه لذت مومي له هغو سو و کوکو

✲✲✲

ته د ښکلو د نڅا په سترګه ګوري
د قفس دننیم بسمل پریشانۍ ته
دعراق(۱) دآزانګو په خیال غوږنیسي ؟
د زندان د زولنو خو دنمانۍ ته

✲✲✲

ته هغه ګړی بهار ګڼې د عمر
په اهالو چې د ګلو نو بربادی شي
جمعیت دی د خاطر هغه ښادی ده ؟
چې په غم دتورو زلفو پریشانی شي

✲✲✲

ته ئې بولې د بهار دفیض او ریځې
دا آهو نه چې تمبړی کو و کاږو نه
په آرزو د هر غلري لمن نیسي
د بېلتون پر ګریوانه د اوښکو لاړو نه

✲✲✲

ګرزه ، ګوره ددې طوردتورو غرونو
په هر ګانې کې بکرې غوندی شرر شته
چې سېځه‌شي د باطل پری آفسو نو نه
د (سینا) د هر هر بوټې دا ا ثر شته

(۱) عراق دموسیقي په‌مقاماتو کې دیوه مقام‌نوم دی

دمرحوم مخلص له اشعارو څخه :

# غزل

باری ښکلو می زړه یووی په بازوکی
په نغمو او کرشمو او په نازوکی

عشق می هسی نوم شهره په جهان خپور کړ
لکه بوغ د ډول چی لوړوی په سازوکی

محتسب آګاه هسی نلری مسعود یم
زماد وی زړه په حال او په رازوکی

هغه سپین ګل می فلک رنګ ریز بدل کا
نن می ګرزوی د شنه خط په سبزوکی

له جهانه مقصد ته ئی چی ته نه ئی
ته وانور به می وی څه په آرزوکی

زه به خپلی وینی خورم له هجره دوسته
څه شی نور خلق دی خوښ وند په مزوکی

چی دعشق جذبه شی چیرته ور څرګنده
زړونه نوی د سر یو په قبضوکی

چی (مخلص) له رازونک زړه دلته پروت دی
نوشته می کی د قبر په شازوکی

---

دا اتڼ دسپلنیو دی په اور کښی
د بسملو پتڼانو اضطراب دی
د ځپلو پښتنو د ننګ جرګی دی
په طلب د آزادی کی تب و تاب دی

✿❀✿

یوه ورځ به دا دخوږو زړو توبش وی
چی به سوړ کاندی ستا زړه له دغو مینو
هغه جام چی ته دبل له وینو ډک څکی
ژر به نورو له ډک شی ستا له وینو

✿❀✿

یوه ورځ به دا حلقی وی ستا دلومو
چی به ستا وخپلی غاړی ته زندی شی
دغه اوښکی چی نن ستا له ځوره اوری
سبا ګوره بیرته ستا دباغ ژلۍ شی

✿❀✿

یوه ورځ به دا ناهینده اسویلی وی
چی به ستا دعیش ډیوې ته د مرګ باد شی
دغه لومی به دی کښی باسی په لومه
دغه صید به آخر ستا دځان صیاد شی

نوی ادب

# جونګړه

جونګړه ورانه ښکارېده، ښکارېده
کونړه له لوړی تاوېده، تاوېده

د شمع رڼا ته ئی ګڼلی ګرا لبی
ورېته په غم کښی ناڅېده، ناڅېده
دخونی غولی کی ګونجاړې پرتی
وړه لور کیې ئی پاڅېده، پاڅېده
ویل ئی موری زما لاسونه که سره
شنه له خنداوه نازېده، نازېده
ماته کاسه او څو ټغران وه هلته
د غم خونګیې ئی څاڅېده، څاڅېده
هلته ئی پېغله لور پر مرګ وه پرته
د ژوند ډیا له ئی ماتېده، ماتېده
نه ئی دارو او نې درمل ؤ په وس
تش په وینا ترې چارېده، چارېده

داوه خبره چې سبا اختر دی
خبره نه وه چې د چا اختر دی

ښاغلی عبدالباری [بشیر]

# څلوریځه

چې دی وینم داوهامو په غوښت تنګ
دا ګڼی د کامیابیې دې ۀ پر شلنګ
دامېل پرسپېړو ټال نه وهل کیږی
اوبو وړی ګر زولای نه شی څنګ

«رشاد»



دنفوسو ډېروالی او نوی هیلی «۳» د ښاغلی عبدالصمد [فدا] ژباړه

# د نفوسو د زیاتوالی په برخه کی بحث سمدستی په متباین ډول سره مطرح شو

او دغه لاری تردغه نژدو پوری د خلکو د نیازمندی په مقابل کی ډیر قیمته تمامیږی چی دډیرو اشخاصو په تیره بیا دمخ پر انکشاف روان هیوادو خلکو له توان څخه لیری دی. مګر پنځورو ستیو وختو نو کی ددغی لاری مصارف په کامل صورت سره نزول کړیدی او تقریباً ۱۵ سنټه کښته راغلی دی.

بایدا ذکرشی چی دهغه استعمال په دولتی پروګرامونو کی امکان لری او حکومتونه کولای شی چی هغه وبی وزلو کسانو ته وړیا ورکړی او زه اوس نه پوهیږم چی پلاستیکی ګلولی په هغه صورت کی چی په صحیح ډول استعمال کړل شی ترکومه اندازی پوری به مؤثره دی مګر هغه مقدماتی شواهد چی په تایوان او کوریا کی ښکاره شوی دی چی ډیری ښځی دهغوی په بیا تطبیق کولو سره دهغه نه دی مجبوری شوی نوی میتودونه د نیازمندیو له مخه استواره دی چی ددغه کار وروستی تکلیفونه ترهغه زیات محدود شی لکه څنګه چی ددغو نویو آشپشاتو نتیجی نسبت و پخوانیو تجربو ته ماهر وسایل ښتیناتو په څو لابراتوارو نو کی ښکاره کړیدی. چی هغوی د څلورو راتلونکو کلونو په موده کی به په بی ساره موفقیتونو لاس پوری کړی چی پدغه کی هر ډول موانع له منځه لیری شی او څو امکانات همدا اوس پر حیوانانو باندی عملی کیږی یو له درخشانه بریالیتوبونو څخه دزرق طریقه.

یا پیوندی چی دزیږیدولو عمل دیو کال یا زیات ترهغه په تعویق کی اچوی او هیله ده چی د(هورمونها) په افرازسره په یوه لږه جزوی اندازه دزهدان په برخه کی چی ډیر مؤثر دی او تخمدانی او د مخاطی غشای ته صدمه نه رسوی ډیر په زړه پوری نتیجی په لاس راشی. نوهرکله که چیری دغه تجربه عملی کړل شی په هغه صورت کی نو ذکرشوی عملیه بیله کوم تاوان څخه ثابته شول.

او هم ښایی چی په ارزانه بیه دی میسره شی. ښایی چی هیڅ سړی دلومړنیو تجربو دموفقیت ارزښت څخه چی لازمه ده درک کړی مګردغه یو ښکاره حقیقت دی چی لومړنیو تجربو لار د ډاکترانو او ساینټیستانو دپاره خلاصه کړل او البته په نژدی وختونو کی به دهغوی موفقیتونه په برخه شی.

څلرم برهان د تولیداتو د تقلیل په برخه کی خوش بینی ده چی د نړۍ ډیرو هیوادونو پخوا ترپخوا ددغه کار ته مبادرات کړی دی لکه څنګه چی دغه مذکوره په جنوبی کوریا، تایوان، هانګانګ، او سنګاپور کی او په څو نورو هیوادونو کی چی د هغوی نتیجی په لاس کی دی عملی شوی ده.

## نوی کتنی

۱- جنوبی کوریا! په دغه هیواد کی د تولیداتو شمیر د حاد په صورت نسبی مشاهده

کیدلای مگرغیر مستقیم شو اهد
ښکاره کوی چی د تولیداتو
معیار ډیر کښته راغلی دی تیر
کال له (۳۹۰۰۰۰) زیاتو ښځو

دصلبی و سائلو څخه د حمل د
وضعی دمخنیولو دپاره استفاده
کړی ده .

دښځو د شمیر مجموعه ددوه
نیم کلونو په موده کښی د پروگرامونو په طی کـولـو کی و
(۷۳۷۰۰۰) تنه شویدی له ۱۹۶۳
کال څخه راپدی خوا په کوریا

کی دا تیازرو تنو ښځو په شا وخوا
کی وچی شولی د(۱۹۶۶) کال په
ختم کی تقریباً (۱۷۰۰۰۰) ښځود
حکومت لـه کوښښونو څخه
استفاده کړیده اودوه برابره د

تولیداتو د کنټرول پروژی تقریباً
(۹۰۰۰۰۰) ښـځو د حکومت له
پروژو سره کومك کړیدی .

دپروگرامونو له شروع څخه
خاص بیا له۱۹۶۳ کال را پـدې
خوا زیات له شل فیصدو څخه
ځوانی ښځی اود بهره وری د

قدرت څښتنی مستفیدی شویدی
همدغه راز شل فیصده نوری ښځی
دعدم بهره وری دلاری استفاده

کړیده اودغه استفادی په ۱۹۶۶
کالو کی ددې با وجود چی
پوره احصائیه پهلاس کی نشته
له د مخه ډیر زیاتوالی پیدا
کړیدی .

د نفوسو د احصائیی
دفترونه یوچټك کاهش د
ماشومانو د شمیر د(۱۹۶۳)
او(۱۹۶۵) کلونو په منځ کی
نه یوازی په ښارونو کی

بلکی دهیواد په لیری ځایو
کی څر گندوی (پلانګبورد )
پدې عقیده دی چی د نفوسو
طبعی زیاتوالی له دریو

فیصدو پرخلاف په (۱۹۶۳)
کال کی و ۵ر۲ فیصده ته
راکښته سویدی چی ذکر
شوی معیار ښایـی چی په
۱۹۷۱ کال کی دوه فیصده
نور تنزیل پیدا کړی اودغه
یو ښـکاره امردی چی د

نفوسوزیاتوالی دحکومت
دقوی او منظمو پلانو تر
کنټرول لاندی راتلای شی .

۲- په تایوان کی : په
دغه هیواد کی دتولیداتود
تقلیل موضوع له لـو کالو
راهسی کښته شویدی له

(۴۵) څخه د یو زرتنو په
مقابل کی په (۱۹۵۵ ) و
۳۴و۵، په (۱۹۶۴) و۷، ۳۲، په

(۱۹۶۵) کی و۴، ۳۲، په ۱۹۶۶
کی کښته کړل شویدی او په
نظر کی دی چی په (۱۹۷۳)
کال دغه معیار وشلو تنوته
ورسیږی پهدغه هیواد کی
ښځی له دریو اولادونو زیات
آرزونه لری .

مشکل نقاط - هند :

کوم وخت چی زه د هند هیواد
ترکتنی لاندی نیسم او هغه خوش
بینی چی د نورو هیوادونو د
پروگرامونو په طرح او تطبیق

کی لیدل کیږی هغه اوس په نا
امیدی اویأس سره بدلی کیږی
هغه هیواد د درستی پالیسی
پیروی کوی پداسی حال کی چی
هندتراوسه پوری نهدی موفق

شوی چی د تولـیداتو دشمیر د
پرابلم دحل دپاره یوخاصه لاره
پیدا کړی .

ددغه هیواد پروگرامونو د
یواو دوو کلونو په وخت کی یو
جدی بهه ځانته نیولیده نو هر
وخت که چیری دغه پروگرامونه

نویولاروته متوجه شی ښایی چی
دهغوی کوښښونه دی په څورا
تلونکو کلونـو کی مطلو به
نتیجی ورکړی .

دجنین سقط - پالیسی او اقدامات

نوو پر مخ تللو هیوادونو
دتولیداتو په تقلیل کی زیاتی
پاملرنی کړیدی لهدغه ډل څخه
جاپان ذکر کوم .

ددغه هیواد دتولیداتو تعداد
دجنګك پهوخت (۳۴) د زرو تنو
په مقابل کی وه او۱۳ تنو ته را
کښته شول اوس جاپان اوهنگری
دوه هیواده دی چی دتولیداتو

د کنټرول له نظره ونورو هیوادو ته وړاندی دی .

دجاپان د تولیداتو د کنټرول موضوع د حکومت د پروګرام سره یوځای وړاندی ځی له دی سببه چی دهغه ځای خلک د سقط

جنین دلاری څخه استفاده کوی نه دعدمی بهر وری دلاری او دغه کار د حکومت د تمایل پرخلاف صورت نیسی .

دهغه ځای خلک د سقط جنین عمل دقانون تر حمایت لاندی په ډیر ښه حرارت سره پای ته رسوی په اوسنی حال کی په هغه ځای کی یو عمومی تمایل دعدم بهره

وری لور ته ایدل کیږی دنفوسو زیاتوالی دبڼایانو په وسیله سره کیږی. چی هغوی د کارد

ګټو بڼله په نظر کی نیولو سره دسقط جینن دعمل څخه استفاده کوی او پدغه برخه کی روغتونو هم په رقابت سره پیل کړی دی د

جاپانی طبیبانو علاقه و سقط جنین ته ددې موجب شول چی دغه عمل وتایوان، جنوبی کوریا، هانګانګ او سنګاپور ته هم سرایت وکی ددې باوجوده

چی په دغه هیوادو کی دسقط جنین عمل غیرقانونی پیژندل شویدی سقط جنین په شوروی اتحاد او په ټوله ختیځه اروپا کی بڼله ختیځ المان او البانیا څخه یو قانونی

عمل دی سقط جنین په داسی هیوادونو کی لکه جاپان د تولیداتو په تقلیل کی یو مهم عامل چی پخوا تر جګړی ډیر زیات وه پیژندل شویدی .

اوس د دغه هیوا د تولیدات بڼله امریکا څخه په یوه کښته مرحله کی دی .

همدغه راز سقط جنین دیولړ شرایطو لاندی په و لسی چین کښی هم قانونی پیژندل شوی دی

اواوس هم یوسلسله خبری جریان لیری څه ؤ چی دغه کار په هند کی هم قانونی شی .

ن ورع په ترکیه یعنی په هغه ځای کی چی دوه کاله پخوا دعدم بهره وری د لارو څخه استفا ده غیر

قانونی وه دهغه هیواد د روغتیا دوزیر د اظهاراتو له مخی دځلورو حامله ؤ

ښځو له ټل څخه ئې یو ې وسقط جنین ته اقدام کړیدی

په لاتینه امریکا کی چی د روحانیونو داختلاف له امله دعدم بهر وری سرویسونه حکومت وځنډول ن ورع سقط جنین رواج شوی دی که څه هم هیڅ سړی

ددغو اشخاصو شمیر په واقعی نه پسو هیږی مګر د هغه ځای روغتونو خپلی یو پر څلورا و

حتی نیمایی بستری د عضوی ناروغانو (سقطجنین) ته تخصیص ورکړی دی یو پروفیسر څرګند وی چی ن ورع سقط جنین، په

ډیروهیوادو کی په پټ او ښکاره ډول سره جریان لری ا البته کوم وخت چی خلک له دغی وسیلی

څخه استفاده کوی ګرانه ده چی کورنی پروګرامونه د ی په صحیح ډول سره تطبیق شی .
مخ پرانکشاف روان هیوادونه

هروخت که وغواړی چی دنفوسو دزیاتوالی په تیره بیا په یو یا د وو ورو ستیو پیړیو کی مخ نیوی وکړی کولای شی ګر په دی کار کی دمترقی هیوادو او د ځنو بین المللی موسسو کومکونه شرط دی .

که څه هم د غنی هیوادو کومکونه پدې کار کی په یوه زیاته پیمانه صورت نیسی نو که دغه مرستی داقتصادی معاونتو

سره مقایسه شی ناچیزه دی کومکونه باید شامل پر تر بیه د فنی او نیم فنی اشخاصو د متخصصینو تربیه، طبی بیالوژی ساینس اجتماعی علومو او همدغه راز دکلنیکو نو پرودانولو او زیات

نور په ۲۳ مخ کی

# د خندا !!!

# پلوشې

د محمد ناصر [ نصرت ]
ژباړه او ټولونه

## د مور مېړه

یو زوی خپلی مور ته چی ډېره بدرنګه ، شرېره او تل به ئي دشکايت خوله خلاصه وه وویل :

موری! پوهېږم چی مېړه غواړی او تر څو چی ته مېړه پیدا نه کړی له خپلو شکایتو څخه به لاس وانه خلی . فلانی ړوند مؤذن به خبر کړو چی تا په ماینه توب قبوله کړی .

مور ئي ورته وویل : ته چی داسی خیال لری نو ړوند څله را ته انتخابوی ؟

زوی ئي ورته وویل: که ړوند نه وی، بل څوك به دی و نه غواړی .

✿❀✿

## د زېږېدو ځای

یوغل نیول شوی او قاضی ته راوستل شو قاضی دهغه د نامه پوښتنه کړی ورته وئي ویل :

قاضی: د څو کالو یی ؟

غل : د (۳۵) کالو .

قاضی: تر اوسه څو پلا بندی شوی یی ؟

غل : لس پلا .

قاضی: لو مړ ی پلا څه وخت بند ی شوی یی ؟

غل : پنځه دېرس نیم کاله د مخه .

وروسته قاضی ورته وویل: درواغجنه! تا خو ویل ؛ زه د پنځه دېرشو کالو یم، غله ورته وویل : هغه و دغسی ده ، یعنی پنځه دیرش نیم کاله پخوا زه د مور په نس وم، چی مور می په بندی خانه کی بندی، او زه هلته زېږېدلی یم .

وروسته قاضی مأمورینو ته مخ ورګرزولی ور ته وئي ویل ځی، دغه ځوان خپل (مسقط الراس) یعنی دزېږېدو ځای ته بوزی .

✿❀✿

## نو کر

یو چا خپل نوکر ته داوصیت وکړ چی هر کله په هر کار پسی ځی باید دوه کاره وکړی هغه هم تل د خپل بادار د هدایت سره سم د یوه کار په عوض کی دوه کاره کول، یوه ورځ ئي بادار ناروغه شو، بادار و نوکر ته وویل : چی ولاړ سه ډاکټر راته راوله، نوکر ولاړ، ډاکټر، د مسجد ملا، مرده شوی، قبر کن ئي ټول له یو ځای ورته راوستل بادار پوښتنه وکړه ؛ چی دا څوك دی ؛

نو کر وویل : دایو ډاکټر دی چی ستاسی تداوی و کړی دوهم نفر ملا دی که ته نسوی جوړ یاسین شریف به در باندی ولولی او ستا د تکفین ترتیب به و نیسی دریم سړی مرده شوی دی چی بیا غسل در کړی او څلورم نفر قبر کن دی چی قبر در ته وکینی .

(د ۲۱ مخ باته)

والی همدغه ډول د لوجنتیك د موسسو سره کومکونه د اطلاعاتی موادو مجهز کیدل او تربیوی پروګرامونه دغه راز ضروری دی ددغه لنډیز په نظر کی نیولو سره هغه څه چی وویل شول دوه ډوله عدم متوافق لیدل کیږی . یو د نفوسو د زیات والی د مخنیولو سوال او ددغی مفکوری منل او بل دغه سوال چی ، آیا لازمه اقدامات ددغه امر د پر مختګ د پاره موجود دی که نه ؟ د افریقا په ډیرو نیم صحرائی هیوادو او لاتینه امریکا کی د فامیلی اصلاحاتو د پروګرامونو پر ضد خاص بیا د هغوی په رسمی خلکو کی لیدل کیږی ددغه کار یواز نی علت د عقایدو حکمرانی او پخوانی نظرې دی چی د نفوسو زیات والی پر نیك فال باندی نیسی ، ډیر مشران ددغو هیوادو پدې عقیده دی چی پر آباد و سرسبز و ځمکو او پراخو دښتو کی د زیاتو نفوسو ډېرښت لازمی دی پردی اساس نو هغوی د پخوانیو عقایدو لاندی او د زراعت څخه پر زاړه سیستم په استفاده سره هیڅ وخت دغه حقیقت نه قبلوی چی د نفوسو کمیدل د اقتصادی چټك تیا ، تعلیم او تربیه ملی سعادت او ملی قدرت د ا مفهوم ور کوی دا هم باید وویل شی تر هغه وخته چی دغه اشخاص د قدرت څښتنان وی حکومت خپل او پروګرامونه شی کولای چی عملی کړی له دی جهته نو ددغو هیوادو حکومتونه غټ فعالیتونه لکه د طبی موسسو د صحی او محلی ځانګو تاسیس کیدل چی البته د هغوی پر مخ تګونه د ماشومانو د صحت او د کورنیو روغتیا او د حامله ؤ میندو چی په ښه کیدو پوری محدود او مقید دی لکه څنګه د نفوسو د زیاتوالی مخه نیول بیله کوم شك څخه نا مطلوبه اثرونه وار د وی مګر زیات شو اهد شته چی دغه وضعه موقتی ده او ډیر ژر بنا ئی چی له منځه ولاړه شی .

(بای)

فلسفی مقولات

فلسفی کنګور ګانی د حافی [امین] په قلم :

# ضرورت او تصادف

زموږ په شاوخوا محیط کی څه فینومینا (پدیدې) چی پیښیږی په آسانی سره د هغو تو پیر لیده کیدای شی . ځینی ئې حتماً پیښیږی که هر څو مره سوچ وشی د هغو مخه نه نیول کیږی . لکه داچی لمر راخیږی او پر یوزی . ځینی نورې فینومینا بل ډول دی ، لکه داچی سړی په لاری ځی او پښه ئې ویالې ته ښو ئیږی او خوږ کیږی خو دغه پېښه حتماً پېښیدونکی نه وه که چیری دغه سړی فکر ښه په سر کی نیولای و او په احتیاط سره په لاری تلی ، کیدای شوای چی دغه څه ور ته نو ای پېښ شوی ، که چیری دغه دوه فینومینا (پدیدی) سره مقایسه کړو و به لیدلی شی چی توپیر لری . خو څنګه ؟ ددغو فینو مینا تر منځ څه فرقونه وجود لری او کوم مشترك شی لری ؟

همدا ډول په اجتماعی ژوند کی د امپریالیزم په ضد د سوشیلزم د مبارزی د کپیټلستی جامعی د داخلی تضادو نو او د آزادی غوښتلو د نهضتو په واسطه په نړ یه کی کپیټلزم حتماً سقوط کوی او ځای ئې سو شلیزم نیسی که امپر یا لیز م هر څو مره هلې ځلې وکړی د خپل ړ نګیدلو مخه نسی نیو ای ، په بل مثال کی ، د نړ یه ټولی مترقی او سوله خوښوونکی قواوې کولای شی چی د پر له پسی مبارزی په اساس د امپر یالستی اټومی جګړ و مخه و نیسی ، نو ویلای شو چی په نړ یه کی اټو می جګړه حتما الوقوع نه ده ، د مخنیوی امکان ئې (چی د نړ یه د مترقی او سوله غوښتونکو قواؤ په ګډه کوشش سره سرته رسیږی) او د پېښیدلو امکان ئې (چی د امپر یالیزم له ماهیت څخه پیدا کیږی) وجود لری .

ووبټول پوهیږو که چیری یوه روغه زړی په پسټی او مناسبی خاوری کی چی لازم لمدبل او حرارت ولری کښېښودل شی زرغون کیږی خو بنایی چی دغه تازه بوټی د سختی ژلۍ په واسطه له منځه لاړ شی.

آیا دغه دواړه پېښی (د زړی زرغونیدل او د هغه ژلۍ وهل) ضروری دی؟ یوې فینومینون پدیده ته چی تر ځینی شرایطو لاندی حتماً پېښیږی ضرورت وایی: په پورتنیو مثالو کی د لمر ختل او لویدل چی د ځمکې او لمر د ارتباط په شرایطو کی حتماً واقع کیږی، په نړه کی د سوشلیزم بریالیتوب چی د خلکو د ستر او مبارزو په واسطه سر ته رسیږی، او زړی زرغونیدل چی په مناسبو شرایطو کی حتماً سر ته رسیږی ضرورتو نه دی ضرورت د تکامل کوونکی فینومینون (پدیدی) له ماهیت څخه پیدا کیږی، د یوې معین فینو-مینون لپاره ثابت او مستدام وی.

تصادف هغه فینومینون (پدیده) ده چی د پېښېدلو او نه پېښېدلو امکانات ئې وجود ولری لکه په و یالی کی د سړی لوېدل، داڅرمی جګړې پېښېدل، او د بوټی ژلۍ وهل داسی فینومینا (پدیدی) دی چی د پېښېدلو او نه پېښېدلو امکانات ئې وجود لری تصادف د یو معین شی له ماهیت څخه نه پیدا کیږی، غیر ثابت او موقتی وی، خو تصادف بېله علت څخه نه وی، علت ئې په خپله په شی کی ننه نه بلکه له هغه څخه د باندی، په خارجی شرایطو کی وجود لری، پداسی حال کی چی د ضرورت علتونه په خپله د شی د ننه، د هغه په داخلی ماهیت کی وجود لری.

د ضرورت او تصادف پر ا بلمونه د پوهانو د مناقشاتو موضع ګرځیدلی ده د هغو په هکله دوه ډوله نظریې وجود لری، ځینی وایی چی: په نړه کی هرشی ضروری دی، کوم تصادفی شی وجود نه لری، ځینی نور ادعا کوی چی په جهان کی هرشی تصادفی دی.

کومه نظریه صحیح ده؟

یوه ئې هم صحیح نه ده، ځکه چی دوی ضرورت او تصادف یو له بل څخه جلا تصور کوی ضرورت او تصادف په ډیالکتیکی ډول سره تړلی دی، یوه پېښه په یوه وخت کی هم ضروری وی او هم تصادفی (په یوه لحاظ تصادفی او په بل لحاظ ضروری وی).

د ډیالیکتیشنانو برعکس، متافزیشینان د ضرورت او تصادف له ارتباط څخه انکار کوی ځینی چی هرشی ضروری بولی وایی: کله چی د یو ضرورت علت ښکاره نه وی تصادف ورته ویل کیږی، ځکه بېله علت څخه کومه فینومینون (پدیده) وجود نه لری دغه نظر چی هر څه ضرورت بولی بالکل غلط دی ځکه سره له دې چی هره کینی مینون ځان ته علت لری خو علت ئې چی په شی کی د ننه نه وی تصادف دی، سره له دې چی علت ئې پټ نه بلکه ښکاره وی، د مثال په ډول به سړی چی د کاڼی په مخ کی ځان اچوی او خوږ کیږی یوه تصادفی پېښه ده سره له دې چی د خوږ کیدو او علت ئې کاڼی ده خو دغه علت د کاڼی په داخلی ماهیت کی پروت نه وو بلکه دغه پېښه د شرایطو محصول ده یعنی علت ئې هغه شرایطدی چی د کاڼی د حرکت له قوانینو څخه د باندی دی.

ځینی نور فیلسوفان چی یواځی تصادف پیژنی په واقعیت کی غواړی چی د علم قوانین چی عینی دی رد کړی، له دې څخه ستر ګی پټوی چی انسان کولای شی چی د حادثاتو جریان درک کړی او د ځان لپاره ګټه ور څخه واخلی دغه ډول پوهان ضرورت د تصادف سویې ته راټیټوی.

په آیډیالستانو کی یواځی هیګل وو چی د ضرورت او تصادف په یو اړخیز مطلقوالی باندی ئې بری وموند خو د هیګل د ضرورت او تصادف ډیالیکتیکی ارتباط یواځی د مطلقی

آیا یا له پاره و یوازې ډیالکټیکي مټریالزم وه چې د ضرورت او تصادف علمي پېژندنه او دهغو ترمنځ روابط ئې پیدا کړه .

پ، ډیالکټیکي مټریالیزم کې د ټولو فینومینا (پدیدو) د ذات البیني ارتباط او تعلق له آمله هره فینومینون د بلې فینومینون لپاره د ضروري یا تصادفي وجود په حیث تصور کېدای شي . نو په هره (پدیده) یا د فینومینا په یو مرکب کې تل دا امکان وجود لري چې ضروري

او تصادفي خواص ئې وښودل شي نو ضرورت او تصادف یو په بل باندې بدلېدلای شي ؛ څه شي چې په ځینو شرایطو کې ضرورت دی په نورو مختلفو شرایطو کې تصادف دی او

بالعکس، د مثال په ډول په ابتدائي جامعه کې د مالو تبادلې یو تصادفي خصوصیت درلود.

څه شي چې به کمیون تولیدول د هغه دغړو په واسطه به په ګډه سره استهلاک کېدل . د شخصي مالکیت له پیدا کېدلو سره د مالو تبادله پراخه شوه چې په کپټیلزم کې یو ضرورت دی .

د دغه څه په اساس چې وویل شوه د متافزیشنانو دغه دلیل بالکل غلط دی چې وایي : څه شي چې ضروري وي تصادفي کېدای نسي ، او څه چې تصادفي وي ضروري کېدای نسي .

امکان نه لري چې ضرورت او تصادف سره جلا شي ، یو له بل څخه په مطلق ډول جلا نه دي په واقعیت کې ضرورت او تصادف سره یو ځای

وجود لري او یو په بل باندې اثر واردوي په یوې پروسه کې ضرورت د مهم جهته او د تکامل د میدان په حیث ظهور کوي او د تصادفي فینومینا (پدیدو) په واسطه تکمیلېږي مثلاً، د لیمو ونه چې په تودو ځایو کې وده کړي یو ضرورت دی .

آما داچې څو څانګې ، څو پاڼې او څو میوه حاصل ولري په مختلفو شرایطو (لکه خاوره، اوبه، باران، او داسې نور) پورې ارتباط لري نتیجه دا چې د ضرورت او تصادف ترمنځ د ننه ارتباط وجود لري .

په ژوندانه او په علمي څېړنو کې باید د ضرورت او تصادف عیني ماهیتونه په نظر کې

وي، د علم وظیفه ده چې په مختلفو خارجي شرائطو کې د فینومینا (پدیدو) ضروري داخلي ارتباطات کشف کړي د عیني ضرورت د مختلفو قوانینو پېژندنه انسان ته دا قدرت

ورکوي چې د طبیعت په مختلفو فینامینا (پدیدو) باندې د شي تسلط پیدا کړي چې له دغو قوانینو څخه د خپل ځان له پاره ګټې

واخلي د اجتماعي علم وظیفه ده چې د اجتماعي تکامل عیني ضرورت کشف کړي او د

هغه په اساس اجتماعي نظام ته د زیار ایستو نکو په ګټه تغیر ورکړي . د شوروي اتحاد مشهور عالم میچورین (۱۸۵۵-۱۹۳۵) په هغو علماؤ باندې انتقاد وکړ چې په تصادف باندې ئې اتکا کوله او د تکامل قوانین ئې نه مطالعه

کول هغه ویل چې موږ د طبیعت لطف ته انتظار نسو کښېنلای ، موږ باید هغه ورڅخه واخلو، دا ده د علم وظیفه .

آیا تصادف ورکېدای شي ؟ نه، تصادف له منځه نسي وړل کېدای خو امکان لري چې نامطلوبې نتیجې ئې اقل حد ته راوستلې شي نو علم هم باید د تصادف څخه سترګې پټې نه کړي ځکه

چې تصادفات د انسان په ژوند باندې نفوذ لري علم باید هغه په نظر کې ونیسي او انسان ورڅخه وساتي .

په مختلفو تاریخي شرایطو کې د تصادف او ضرورت ارتباط هم فرق لري. په کپیټلزم کې د ضرورت عملیه د کپیټلستي مالکیت په واسطه تعینیږي خلک د جامعي د ژوندانه لپاره

د پلان جوړولو څخه محروم دي، دوی محض د کپیټلزم په لاس کې نانځکي دي. ګټه د

مارکیټ د نرخونو د تصادفي عروج او نزول په واسطه صورت مومي چې دغه نرخونه د عرضې او تقاضا په تصادفي وضعې پورې تړلي دي. د کارګرانو وضع هم تصادفي ده، امکان لري چې په هره لحظه کښې بیکاره شي.

په سوشلیزم کې د داخلي قوانینو له آمله خلک کولای شي د تاریخ په راتلونکي جریان باندې پوه شي او ورسره سم د خپل ژوندانه لپاره پلان جوړ کړي. علم هم د سوشلستي جامعې

د ماهیت په اساس چټکتیا سره وده کوي. کله چې د۱۹۵۷ کال په اکتوبر کې شوروي-اتحاد په تاریخ کې لومړنی مصنوعي سپوږمۍ

له مځکې څخه چاپېره و توغوله بورژوا پوهانو ویل: چې دا یو تصادفي او یوازېنی موفقیت و. خو دغې ادعا حقیقت نه درلود وروستیو تجربو هم ثبوت کړه چې دا موفقیت د سوشلیزم د داخلي ماهیت نتیجه وه.

تصادف، چې امکان لري واقع نسي مطالعه کیدای شي؟ تصادفي فینومینا (پدیدې) د کومو قوانینو تابع دي؟ د دې لپاره چې دغو پوښتنو ته

ځواب ووایو یو مثال به ذکر کړو. یو نوی کوچنی چې په یو کور کې زوکیږي هلک به وي که نجلۍ؟ په لومړي نظر کې داسې ښکاري

چې د لته قانون وجود نه لري خو د ډېرو کورنیو له مشاهدو څخه ښکاره شوې ده چې

## زما امید

ګڼې وریځې یو پر بل پر پوزي
او تیاره خپریږي.
آه، اې مینې؛ تاولې زه له
وره د باندې یکښې یوازې
منتظره درولې یم؛ د غرمې د
محنت په شغولو لمحاتو کې زه
د ټولنې سره اوسم مګر پدې
توره دربله تنهاورځ کې یوازې
ته یې چې زما امید در پورې
تړلې دي.
که ته خپل ځان را ښکاره نه
کړې، که ته ما همداسې یوازې
پرېږدې نو زه نه پوهېږم چې د
باران دا اوږد ګړي به څنګه
تیر سي.
زه د آسمان لېرو تیارو ته
ګورم، ګورم اوزړه مې در پیدو
سره سره په دوك اخته دی.

[ټاګور]

د هلکانو او نجونو زوکېدل دغه نسبت تعقیبوي: د هرو سلو نجونو په مقابل کې (۱۰۵) هلکان زوکیږي. ښکاره شوه چې د تصادفي فینومینا (پدیدو) انتظام په یو محدود شمېر مشاهدو کې نه ښکاره کیږي خو په یو لوی شمېر مشاهدو کې دغه انتظام نظر ته راځي دغه انتظام ته احصائیوي انتظام وایي: لدې څخه ښکاره کیږي چې تصادفي فینومینا هم تر مطالعې لاندې راځي. معاصر علوم دغه څه د ضرورت له مطالعو سره ژور مځکې بیایي. انسان د نامطلوبو تصادفاتو د جریان په مقابل کې بې قدرته نه دی هغه کولای شي چې د ځینو مخه و نیسي او د ځینو تخریبي تاثرات اقل حد ته راقیټ کړي. (ذیری)

# د هیواد معروف فوکلوریست محمدګل ((نوري))

تقریباً د پرش کاله پخوا هغه مهال چې په پښتو ټولنه کې د پښتو ژبې له پاره کار شروع سو نو د هنري او ادبي څېړنو په لړ کې د پښتو فوکلوریا اړخ ته هم زیاته توجه موجوده وه دا کار چې څو نه هغه وخت مهم ؤ نو د زمان په تېرېدو ئې اهمیت ورځ په ورځ لوړ ولاړ او ددې دلیل هم دا ؤ چې موږ د مهمو مسایلو په څېړنه کې هغه وخت ښه بریالي کیدای شوای چې د خپلو خلکو د کلتور سره بلد شوي وای.

زموږ هغه محققین چې په کلتوري برخه کې د مطالعې خاوندان دي پدې ښه پوهېږي چې زموږ د فوکلور په خزانه کې ټوله هغه څه موجود دي چې له یوې خوا څخه موږ ته د ټولنې په پېژندنه کې بصیرت راکوي. او له بلې خوا دغې پېژندنې په برکت موږ ته دا درك رابخښل کېږي چې هغو ته د خدمت مستقیمه لار پیدا کړو. زموږ فوکلور چې هرچا د حقوقي تعاملاتو پر اساس کتلي دي نو دې نتېجې ته رسیدلي دي چې دلته هر هغه څه د پریمانه لاسه موجود دي چې یو کلتور پېژندونکي ورته محتاج دی. په هغه وخت کې پښتو ټولنه کې ټولې لوی غنیمت آثار ولېکل شوه او که په فوکلوریك برخه کې د تحقیق هغه لاري پسې تعقیب شوي وای چې د هغه وخت خلکو اینې وې نو باور دی چې نن به موږ ټېر څه درلودای. په هغه وخت کې چې په پښتو ټولنه کې کوم لیکوالان راټول وه هغه نن په داخلي او خارجي سویه د هیواد لوی سیاسي څرخونو ته حرکت ورکوي او یوا ځني سړي چې د دغو ملګرو له صحنې څخه غور ځېدلي او په ګمنامي کې کار کوي هغه د هیواد لوی فوکلوریست محمدګل (نوري) دی

دې سړي پوښته موده په پښتو ټولنه کې کار وکړ او د پښتو فوکلور په برخه کې ئې غنیمت آثار منځ ته راوړل چې متأسفانه تر ننه پورې موږ موفق شوي نه یو چې پر هغو زیاتوب راولو. ښاغلي محمدګل «نوري» (ملي هینداره) چې د پښتو شفاهي داستانو مجموعه ده پښتو متلونه، اصطلاحات، محاوري، سندرې، لوبې نومونه او داسې نور څه راټول کړل چې چاپ شویدي، او پر دغو آثارو اوس په شوروي اتحاد، المان، انګلستان، هند، فرانسه، جاپان، چین او نورو ځایو کې تحقیقي علمي مؤسسات کار کوي او دوی ئې زموږ د هیواد د کلتور په معرفي کې غنیت ذخایر بولي. ښاغلي (نوري) د یو لائق فوکلوریست په حیث یو وخت په رسمي مأموریت کې د عمومي مدیریت تر څوکې پورې کار کړی دی او بیا تقاعد شو خو دی وایي چې: ما ته د تقاعد ټوله حقوق یوا ځې دولس زره افغانۍ راکول شویدي.

تر تقاعد وروسته ئې درېشي وغورځوله سرئې لڅ کړ، بو ټونه ئې له پښو وکښه او په یوه کمپس او بړ تاڼه کې ئې د کندهار په هرات دروازه کې دوې کوندې یخې او یو تاغار مستې مخ

ته کښېنوې، څو کاله ئې دغه کاروګړ او په داسې حال کې چې سپینه ږېره ئې ترڅنګر او سپینې څوڼې ئې تر اوږو اوږدې شوې وې د یو مجذوب الحاله سړي رنګ ئې درلود .

اوس دا ښاغلی د کندهار د اطلاعاتو او کلتور په مدیت کې د یوولسمې رتبې د کاتب په عوض کې اجیردی .

ښاغلی نوری له هغه وخت څخه چې د عمومي مدیریت پر څوکۍ ناست ؤ بیا تر هغه وخته پورې چې د مستو تاغار ته ناست ؤ او بیا دا اوس چې ئې د کتابت څوکۍ ته تنزل راکړی دی په فوکلوری برخه کې له تحقیق څخه لاس ندی اخېستی کار کوی خو خپل کتاب او نوټ چا ته نه ورکوی .

کله، کله چې قهر ورسي نو د خپل تحقیق ډېر په زړه پورې آثار ئې څېرلي او غورځولي دي .

همدا اوس چې زه دده د ژوند ناظریم نو لکه په پښتو فوکلور کې چې څه خپاره سویدي هغو نه څوشیه ورسره دي خو پدې مې پوره باور دی چې دا د څېړنې غنیمت ذخیره به هم داوریا او بو شو مه شي داچې ولې زموږ دا محقق سړی دې حال ته رسیدلی دی چې داویا کالو په عمر کې د خپل ژوند سرمایه په اور او اوبو کې غورځوی؟ ددې سوال جواب دې زموږ اجتماعي سیکولوجستان راته ووایي ؟!!

(زیری)

# د هوا مرغه

پورته او پورته ...!
لکه داور لوګی ... د

مځکې څخه لوړ ...! لکه
چې ستوری په ورځ نه
ښکاریږی ...!

سور شفق هم ستا د الوتو
ولمبې ته ویلیږی ...!

پورته الوزی او سروز کوی
...! سروز کوی او پورته
پسې الوزی .. اوس خو نه
ښکاریږی ..!

ستا بڼغ پر مځکه او هوا
پروت دی ... ! لکه چې په
توره شپه د سپوږمۍ وړانګې
هرې خوا ته خپریږی ...
ستا بڼغ هم هرې خوا ته
پروت دی .. !

زه خو ستا سروز ته

لیونی شوم ...!

ځکه نو وایم ... چې ما هم
په خپل سروز پوه که .. !
خپله نیمایي خوشحالی
راکه ...!

چې زما بڼغ ته هم ...!
خلک حیران شی ...!

[ شیدی ]



د عبدالقوی (هادی) لیکنه:

# ژوند

ژوند په دوو ادبي پارچو کې:

۱) په نړۍ کې په هر چا باندې ډول، ډول حالات راځي، چا ته ژوند د زهرو یو ډک جام وی چې په ډېر تکلیف ئې نوشوی ؛

بالعکس چا ته همدغه ژوند د شرابو یو لوښی دی چې په نڅا (رقص) سره ئې څکي، بعضې شپې د لوږې د مرګ په خواهش سبا کوی، ځینې خپل خوږ لی

هضمولای نسي، دغه رنګه بعضې ئې د لاس په تنها کو ګټې خو د خپل ژوند لازم اسباب برابرولای نسي بالعکس بعضې ئې د ظلم، استبداد د لارې په خوشحالی سره تیروی.

سره د دومره سختیو خوشبخت پخپل ژوند کې هغه څوک دی چې په قوی زړه په هر ځای کې د سختیو، نرمیو تودو، سړو په مقابل کې لکه غرولاړوی .

۲) ژوند عینا د یوې خوږې چینې او به دي څوک ئې د زړو په جام کې څکي او څوک ئې د خاورو په کنډولي کې، هغه خلک چې نه د لری او نه هغه په لپو ئې را اخلي په اوبو کې څه فرق نسته فرق په لوښو سره کیږی د بډای او خوار تو پیر په لوښو کې دی .

لاکن دا اوبو په خوند هغه څوک ښه پوهیږی چې ډېر تږی وی .

ادبي ټوټه ·

د آلفرد دوموسه لیکنه :

د [متین] خوږیاڼي ژباړه

# شـــــــپه !!

اې شاعره، خپل چنګ دې واخله او راشه چې ښکل دې کړم، د نسترن ګلونه ورو، ورو غوړیږي، ځکه چې نن شپه پسرلی خپله ښکلا له بل هر وخت نه ښکلې څرګندوي ·

نن ورځ د لمر پرتو تل له بل هر وخت نه په ډېره مینه او عاشقانه توګه د نوږو ونو د پاڼو او ښاخونو سره خدای پاماني کوي ·

نن شپه ګرد بوټي او ګلان ښکلي طبیعت غواړي او دا آرزو لري چې دهمېش لپاره وغوړیږي او ښکلي طبیعت به په زړونو کې لاره پیدا کړي او د ښځې او ځوان مېړه پالنګ به په عطر واو د مینې په سوز ډډلي زمزمې ولړل شي ·

اې شاعره خپل چنګ تر ځنګ کړه ځکه چې نن د ځوانۍ هوسونه د نړۍ په ګوټونو کې په جوش راځي ځکه چې د هوسونو له تودوخې څخه خمار پراته دي ·

اې شاعره خپل چنګ ته لاس کړه، ځکه ښه دې وپېژندم دا زه یم هوزه د(شعر الهه) ای ستا ابدي محبوب یم چې نن مې ته غلی او مړاوی تر نظر راغلې · هو- زه یم ستا د ژوند جاوداني ملګرې چې له لوړو آسمانو څخه مځکې ته راغلم تر څو ستا سره یو ځای وژاړم ·

اې شاعره، پورته شه او خپل چنګ له یاده مه باسه ځکه چې تر دې وروسته د چپ کېدو حوصله نه لرم، ته نه ګورې چې د پسرلي نازکې وږمې زما وزرونه په حرکت راوستل پوه شه به وروسته په ما له دې ځای څخه پورته کړي او د مځکې له فضا څخه به مې لوړ بوزي ·

آخر اوښکې توی کړه، چیغې او سوزناکې کوکې شروع کړه او که نه وخت به تېر شي ·

اې شاعره !

د ګومان هېڅکله ونه کړې چې د غم او اندېښنې د ښکلا د درک کولو له پاره غلی او چپه خوله کښېنې ځکه چې ته باید دا ومنې چې له ټولو خوږو او ښکلو نغمو څخه هغه نغمې ډېرې ښکلې او خوږې دي چې له ناامیدۍ څخه ډکې وي ·

# KANDAHAR

## MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

( FEBRUARY ) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیازخاوند: دطلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخی، اجتماعی، علمی، ادبی

اداره: دشهیدانوواټ

دتاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال یوولسمه گڼه د۱۳۴۷ کال دسلواغی میاشت

پرله پسی گڼه ۱۰۱

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

دهیوادپه داخل کی [۳۲] د

په دباندنیوهیوادو کی یوډالر

دکندهار دولتی مطبعه